# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم: پردیس خیالونه
شاعر: سمیع الدین افغاني
د چاپ کال: ۲۰۰۹ میلادي
ټولګه: دوهمه
خپرندوی: افغان ننګ ویب پاڼه
کمپوز او ډیزائن: اجمل اکبري
د چاپ ځای
د حق د لارې کلتوري ټولنه –جرمني

د افغان ننګ د ښکلې پاڼې درنو کار کونکو او په خاصه توګه د ښاغلي اجمل اکبري صیب د زحماتو نه د کتاب دتنظیم په برخه کېیوه نړۍ مننه ۰
سمیع الدین افغاني

# خپلې خبرې

## درنو لوستونکو !

لکه څنګه چې ټولو ته ځرګنده ده چې زموږ په ګران هېواد افغانستان کې د کلونو کلونو راهیسې تېل شوې جګړه روانه ده چې دې جګړې زموږ ډېر شمېر هېوادوال د فقر، بد بختي، مرګ، ژوبله او مایوسۍ سره مخامخ کړي دي، او همدا رنګه زموږ ډېر هېوادوال یې شهیدان، معیوب او په هیواد کې د ارام او انساني ژوند کولو څخه محروم او په پردیو ملکو کې یې د پردیسۍ ژوند تېرولو ته اړ یستلي دي.
د دې تر څنګ پدغه تېل شوي جګړه کې د هر څه نه د مخه زموږ کلتور او ادب ته هم په لوړه کچه ضرر او تاوان رسیدلی دی اودوطن دښمنانو همیش زموږ کلتور او تاریخی ارزښتونو ته نه تنها په سپکه کتلي بلکې هغه یې توهین او غوښتلي یې دي چې خپل فرهنګ او رواجونه او خپلې ارادې زموږ په خلکو پلي او عملي کړي .
وطن او د وطن په غیږ کې د خپلو دودونو او رواجونو، کلو
او باندو په مینځ کې اوسیدل دا هغه ستر نعمت دی کوم چې لوي خدای یې په خپلو بند ګانو پیرزو کوي، خو ددې پیرزوینې په قدر او اهمیت هغه څوک ښه پوهیږي کوم چې د وطن او دخپل ټاټوبي څخه لرې په دوامداره توګه په نورو هیوادو نو کې د مهاجرت شپې او ورځې تېروي.
پردیس خیالونه زما د شعرونو یوه بله نوي شعري مجموعه ده کوم چې د مهاجرت په دوران کې مې دخپلو هیلو او ارمانونو لړۍ د شعر په ژبه اظهار او د قلم او هېوادوالو سره شریکه او په هغه کې مې د خپل د دردیدلي زړه اوآز منعکس کړی دی.
درنو لوستونکو !
په دغه شعری ټولګه د وطن نامتو علمی شخصیت سر محقق ښاغلی عبدالله بختانی خدمتګار هم پیرزوینه کړی او یوه ښکلی علمی لیکنه یی پری کړی چه د هغوی لیکنه پدی مجموعه کی بی له تصرفه کتمټ نشر ته سپارو او دبختانی صیب څخه مننه کوم چه د ډیرو مصروفیتونو تر څنګ د کتاب په اړه خپل نظر څرګند کړی دی، ښاغلی بختانی صیب ته د اوږد ژوند او دښه صحت هیله دلوی خدای ددربار نه لرم.
همدارنګه د ځوا ن او وتلی لیکوال او شاعر ښاغلی اجمل اټک یوسفزی څخه مننه کوم چه زه یی مخامخ نه یم لیدلی او زما د شعرونو او لیکنو سره د رسنیو له لاری اشنا اویوه ښکلی ادبی سریزه یی پدغی شعری ټولګه لیکلی ده.
په پای کې لازمه ګڼم د هغه دوستانو څخه چې ددغی مجموعې په راټولولو، تنظیم او چاپ کې یې له ما سره مرسته کړې مننه او یادونه وکړم.
د لوستونکو د نیکو او اصلاحي نظریاتو او مشورو په هیله.

په ډیره مینه
سمیع الدین افغانی

# نالیدلی سمیع الدین افغاني!

دا دستور دی چې له درده زګیروی خیږي
ګڼې څه و د رحمان د شاعرۍ

په رښتیا چې شعر او شاعري د هر چا کار ندی ، شعر د مینې ، درد ، عاطفې او د یوه سپیڅلي احساس زیږنده ده.
په یوې ټولنې کې تر ټولو ډېر حساس او سترګور خلک شاعران او لیکوالان ګڼل کیدای شي.
کله کله یو تن د حقیقي عشق او یا د مجازی عشق پر لمبو وریت شي او تر خولې یې اه او فریاد راووځي، خو ځینې وخت داسې هم پیښیږي چې یو انسان پخپله ټولنه کې نا انډولي او بې عدالتي ویني او په پایله کې یې د همدغې نا انډولۍ پر لغړن اور زړه او دماغ سوځي ،چې هر ګوره همدا سوز او سوی بیا ورو ،ورو د الفاظو جامې اغوندي او په همدې ډول بیا له زړه نه زړونو ته لارې جوړوي.
ځینې وخت په نړۍ واله کچه یو شاعر، عالم او لیکوال داسې یوه دردمنه او یا خوږلنه وینا وکړي چې په هغې کې به د ډېرو نړۍ والو درد او غم نغښتی وي.
دا چې انسان یو ټولنیز مخلوق دی، نو پر همدې بنسټ دا وینا بیا د نړۍ پر مخ پرتو نورو هیوادونو او ولسونو ته ځان وررسوي ، که څه هم د بل هیواد او ولس خلک به د شاعر په مورنۍ ژبه د سره هیڅ نه پوهیږي ،خو دا چې په ټولیز ډول کله کله د انسانانو دردونه یو شان وي ، نو د همدې وروستۍ اړیکې له کبله بیا هر دردمن پرې خپل درد کټ مټ د شاعر په شان تسکین او ټکوره وي.
ښاغلی سمیع الدین افغاني که څه هم له خپل هیواده لرې پروت یو افغان مسافر دی ، خو د خپل یتیم وراره ،سرتورې وربرې بې مور او پلاره ، کور او اور یې ژړوي او کړوي ، چې دادی نن یې درد د الفاظو او کلمو په بڼه ستاسې په وړاندې دی.
ما لا تر دې دمه ښاغلی سمیع الدین افغاني مخ په مخ ندی لیدلی ، بس یوازې او یوازې د ښاغلي افغاني د خوږ من زړه ، احساس ، کړیکې او سریکې وې چې زه یې هم د یوه دردېدلي افغان په توګه د ښاغلي افغاني صیب د شخصیت سره اشنا کړم ، هو همدا پیوند و ، ځکه چې د هغه)شاعر( د هیواد سرتورې زمونږ پت دی او د وطن یتیم بچی زمونږ تن دی ، د هغې بې وروره کور زما کور هم دی او زما بې اور کور د هغه هم دی، یعنې خوښي او غمونه ټول مو سره ګډ دي.
زه د فن او هنر له مخې د ښاغلي سمیع الدین افغاني ، پاک او سپیڅلی احساس نه ټکنی کوم ، ټوله ) پردیس خیالونه ( ټولګه مو په لاس کې ده ،تاسې او خپل انصا ف او قضا وت .
مګر دا چې شعر مینې ، احساس ، پیغام او انساني عاطفې ته وایي نو ما دا ټول د ښاغلي افغاني صیب په پیبیلو ویناوو کې لیدلي او لوستلي دي .

پر ژوند او قلم یې برکت
اجمل اټک یوسفزی
ناروې ، اوسلو

## محبت

همېشه به مې ورب ته داد عاکړه
محبت د نازولي جانان راکړه

دا نړۍ راته فاني دنيا حساب ده
هوښيارانو توبه جوړه د عقبا کړه

د جنت او د دوزخ پروا به څه کړم
چې پروا مې شپه او ورځ ستا د رضا کړه

چې تمام عمر په فکر د دولت وي
هغه خلکو د خپل ځان سره جفا کړه

د مادي دنيا متاع ده د څو ورځو
غافل مه شه او خروي تخفه پيدا کړه

چې د زړونو په رضا رب خوشحالېږي
راشه ! داسې انساني احساس اشنا کړه

د اخــلاص او صــداقت لــوړه رتبــه ده
د کعــبې د پیروانــو ځان همــرا کــړه

په کــوم ملک کــې چې رښتني ورورګلـوي وي
د هغــو خلکو روزګـــار ربــه صـفا کــړه

چــې د بخل او کیــنې نــه ، نه مړیــږي
هغــه قوم ،هـغــه ولس ربــه پــنا کـــــړه

غـرض دا چې صدا قــت لـــوی عــبادت دی
قــوم په صدق کې حاصل د خدای رضا کــړه

---------------------------------------

۲۰۰۸-۱۰-۲۱

# افغان یم

زه څوک د کوم ملیت د کوم زبان یمه زه؟
بس دومره درته وایم چې افغان یمه زه

پښتون دی که تاجک که هزاره ددی وطن
ازبک نورستانی که پشه ای دی یا ترکمن
ددې خاورې بچیان دي سره یو مو دی مدفن
تاریخ یم جوړونکی د زمان یمه زه
بس دومره درته وایم چې افغان یمه زه

دښمن مو په نفاق کې یو تربله بیلوي
په رنګ رنګ دسیسو مو په خپل مینځ کې جنګوي
په حیله او نیرنګ مو په قومو جلا کوي
اوس پوه زه د دشمن په بد ګمان یمه زه
بس دومر درته وایم چې افغان یمه زه

د توري په میدان کې هردښمن پدې پوهیږي
افغان باندې په زور او زیاتي کله کلي کیږي
خصلت مو د میړانی دی په دې هرڅوک پوهیږي
په عزم، اراده کې با ایمان یمه زه
بس دومره درته وایم چې افغان یمه زه

راځئ ای خوږو ورونو چې وطن سره اباد کړو
په پوهه هوښیاری باندې دا خپل غلیم برباد کړو

پیشرفت او ترقی ته افغانی عزم بنیاد کړو
بیا سولې ورورولي ته ارمغان یمه زه
بس دومره درته وایم چې افغان یمه زه

-------------------------------------------------

کال **۲۰۰۵** مهاجرت

# دا افغانستان دی

ای وطنه گران وطن
ښکلی گلستان وطن
دا مو د خاپوړو کور
دی جنت نشان وطن

ښه باغ او باغچې لري
رنګ په رنګ میوې لري
ښار د قندهار زموږ
پیغلی پښتنې لري

ښکلي ننگرهار ته ځم
گل د نارنج ښار ته ځم
بیا به د سپرلي موسم
د ښکلو دیدار ته ځم

غرونو کی زمریان لري
ژبې اتڼ چیان لري
خلکو د پکتیا سیمه
ښه ښایسته ځوانان لري

لوړ نام او نشان زموږ
دا د اسیا بام زموږ
ځومره لوړ شهرت لري
**لعل** د بدخشان زموږ

درونډ په زیارتونو دی
ځای د طاعتونو دی
دا د غزنویانو کور
زړه د تاریخونو دی

لاړ به شو مزار ته بیا
د روضې دیدار ته بیا
سوال به د ایمان وکړو
د الله دربار ته بیا

دا مو دقومو کلی
دا مو د دودو کلی
لوړعالي کلتور لري
دا مو د نیکو کلی

لوړ په تول جهان دی
دا کور د افغان دی
دا مو د پلرو کلی
دا افغانستان دی

-----------------------------

کال ۲۰۰۲
مهاجرت

# داڅه حال دی

دغه خوب دلیدو نه دی
نه خوبونه دلیدو دي
داحالت دلیدو نه دی
نه وختونه دلیدو دي

څه تیارې دي خپرې شوي
سمه او غریبې دی نیولی
دی وحشي وحشي شیبو کې
دا فرصت دلیدو نه دی
نه وختونه دلیدو دي

ددی شنه اسمان تر څنګه
دا زخمي زخمي وختونه
مرګ او ژوبله ، بیوسي ده

دا دهشت دلیدو نه دی
نه وختونه د لیدو دي

پرهارونه مرګ او ژوبله
دبې رحمو قا تلا نو
د ظالمو جابرانو
دا وحشت د لیدو نه دی
نه وختونه د لیدو دي

حالتونه توفاني دي
اوس وختونه توفاني دي
ای د وخت سالار تربوره
ستا خصلت دلیدو نه دی
نه وختونه دلیدو دي

نن دخدای د بنده ګانو
ډېر بې حده سپکه کیږي
څوک پرزیږي څوک ځړیږي

دا قیامت دلیدو نه دی
نه وختونه دلیدو دي

ای ددې زمان انسانه
سره یو شه یو همت شه
یوه چیغه د غیرت شه
نور غفلت دلیدو نه دی
نه وختونه دلیدو دي

تر دې غلو او ګیدړانو
داوحشي ، سړي خورانو
ترېنه خلاص مظلوم انسان کړه
دا ذلت دلیدو نه دی
نه وختونه د لیدو دي

-----------------------------------

کال ۲۰۰۷ مهاجرت

# زخمي زړه

شیخه نور کله زه تسبیح شمېرم
زه مې زخمونه د سینې شمېرم
ګیله مې ځکه د خپل ځانه راځي
خپل صداقت دا ناکردې شمېرم
چې په وفا او صداقت مړه شوي
د هغه خلکو هډېرې شمېرم
د زړه باغچه مې ټول زخمي زخمي ده
د رغیدو یې ورځې شپې شمېرم
د پیوندي زړګي نه څه غواړې نور
نه ستا وعدې نه مې ګیلې شمېرم
ستا زړه په کوم رنګ چې تسپې اړوي
زه افغانۍ مې شوګیرې شمېرم

---

فرانکن کلینینک-باد کیسینګین
۲۰۰۸/ ۸ / ۱۷
جرمني

# د مينې رنګ

يار ه ستا په اننګو کې
چې د چا د وينې رنګ دی
زما د پاکې مينې
حقيقت پکې څرګند دی

ما ويل سترګې دې خوږې دي
دې ويل تورې په رنجو دي
ما ويل مينه دې سور اور دی
دی ويل يار زما ملنګ دی

ما ويل زما سره اشنا شه
دې ويل زموږ کلي ته راشه
ما ويل مينه رسوا کيږي
دې ويل دا د مينې خوند دی

ما ويل ښکلې دې ځواني ده
دې ويل مينه رسوايي ده
ما ويل زه دې ليونی کړم
دې ويل يار مې غنم رنګ دی

ما ويل سپينه خوله دې راکړه
دې ويل مينه کړې بې باکه
ما ويل زړه ته مې نژدې يې
ويل زه شمع يار مې پتنګ دی

ما ویل راشه مازیګر ته
دې ویل دربه شم ګودر ته
ما ویل لاره به دې څارم
ویل منګی مې شین په څنګ دی

---------------------------------

۲۵/ ۴ / ۲۰۰۷

# پاکې هیلې

هغه څه چې مو په زړه کې هوسیږي
زموږ هیلې دي منزل ته به رسیږي

دغه هیلې ډېرې پاکې او سوچه دي
چې ملګري مو د ژوند او همېشه دي

دا ژوندون د امیدونو لوی جهان دی
ځکه تل په هلو ځلو کې انسان دی

د مادي دنیا متاع پسې به ګرزي
خو اخر به د نیستۍ په طرف پرځي

چا چې بل انسان ته کړی دی خدمت
دا حتمي ده چې بیا مومي به عزت

ځینې شته دا سې کسان چې مضري کا
چې تاوان درته رسیږي خوشحالي کا

دوی په خپله په تلاش کې د ضرر دي
خدای وهلي ځان نه کله با خبر دي

څوک چې چاته کوهی کني هغه خپله
په کوهي کې به یې ځای وي تل ترتله

چې د بخل او کینې نه نه مړېږي
ناروا دی هېڅ منزل ته نه رسېږي

تکبر دا دجاهلو خلکو کار دی
په دنیا باندی تل کله اعتبار دی

پاکې هیلې د انسان او انسانیت
درته ښایي که دې ګران وي خپل عزت

د اخلاص لاره مدام د پیروزي ده
د انصاف تله قانون د پادشاهي ده

افغانی دا صداقت لوی عبادت دی
خپل قسمت چې در رسېږي قناعت دی

---

جنوری ۲۰۰۴ جرمني

# مهاجر

زړه کې چې مغروره او کاکه یمه
دا سې معلومېږي چې ساده یمه

دلته په پردي وطن کې ژوند کوم
هر څه خپلوم ځان بیګانه یمه

ګوري راته تل دوی په پردي نظر
هسې زه د څو ورځو میلمه یمه

----------------------------------------

۲۴ / ۴ / ۲۰۰۷
مهاجرت

## د زړه باغچه

دزړه باغچه کې درته گل کرمه
رامبیل، چمبیل، نرگس، سنبل کرمه
دا به وعده راسره کړې جانانه
دگلو سیل له به راځې جانانه

د زړه باغچه کې درته خیال جوړوم
د ښاپیریو پکې ټال جوړوم
زما دا هیله به مني جانانه
دگلو سیل له به راځې جانانه

زما د پاکې مینې ښکلي بڼ کې
ستا د ښایسته حسن منلي بڼ کې
د وفا لاس به راکوې جانانه
د گلو سیل له به راځې جانانه

زما د مینې او سرو گلو باغچه
د رنگینو ،باغ او بلبلو باغچه
بیا له خزانه به ساتې جانانه
دگلو سیل له به راځې جانانه

ترڅو پدې باغچې خزان گډ شي
په سرو گلونو مې تالان گډ شي
پاس په لیمو به قدم ږدې جانانه
د گلو سیل له به راځې جانانه

---

/۲۰۰۷ / ۴ / ۱۰

جرمني

# ليونۍ

د فکر تال کې زنګيده ليونۍ
بيا په زړګي مې وريده ليونۍ

ما مې د زړه ورته داغونه شمېرل
دا بې پروا وه خنديده ليونۍ

هسې بې درده بې احساسه نه وه
ځما په مينه پوهيده ليونۍ

ما چې اظهار ورته د مينې کوه
لکه د ګل به غوړيده ليونۍ

افغانی څومره ښې شيبې تېرې شوې
چې په مالت کی اوسيده ليونۍ

------------------------------------

۱۰/۷/۲۰۰۸

مهاجرت

# غزل

زړه چه شی بی شوره بس د عشق د کوره ووځی
یار ورته اغیار شی د زړگی د زوره ووځی

دغه د بې مینو ښار دزړو تسل په څه کیږي
دا چې د یار مینه یې د فرض د پوره ووځي

عزم فولادي د یار په مینه کې په کار دی
ژوند دنا امیده ارمانو د توره ووځي

ژوند د پاکې مینې ، پاکو هیلو سره ښه ایسي
گوره چې مین د ناکردو داوره ووځي

هسې چې ښایست یې د اشنا په اننگو کې دی
هسې یې غزل دنا اشنا انځوره ووځي

------------------------------------------

۱۲/۱۲/ ۲۰۰۲

# کلیواله

د کلي مینځ کې د پنجو په څوکو تلله جلۍ
لکه کوتره مې د ورایه ولیدله جلۍ

د سیخکو کتار یې جوړ وه د اوربله ځینې
په یو نظر یې زړګی ویوړه د ګوګله ځینې
په سرو منګلو یې لاس تېرکړه د کاکله ځینې
په هر قدم کې لکه لښته ماتیدله جلۍ
لکه کوتره مې د ورایه ولیدله جلۍ

خپلو همزولو سره وتې په چکروه نه
ښکلی موسم د پسرلي او مازیګر وه نه
د پلو لاندی پټ کاته یې په هنر وه نه

د نجنو مینځ کې لکه شمعه بلیدله جلۍ
لکه کوتره مې د ورایه ولیدله جلۍ

یو یې په غاړه سورکمیس ګل بخمل وه نه
په جګه پوزه د چارګل یې جلوبل وه نه
دا خوشبویي چې په ګډا ترې د سنبل وه نه

په افغاني لباس کې ښکلې ښکاریدله جلۍ
لکه کوتره مې د ورایه ولیدله جلۍ

---

۷/۱/۲۰۰۸

## د جانان غم

د شوګیرو به درته څه ووایم
د ژړیدو به درته څه ووایم
چې دې په مینه کې لوګی لوګی شوم
د نا کردو به درته څه ووایم
د جانان غمه لیونی دې کړمه
د رغیدو به درته څه ووایم
چې په وعده باندې وفا ونکړې
د تش وعدو به درته څه ووایم
ګیلې مې ډېرې په زړګی تېرېږي
د دې ګیلو به درته څه ووایم
زړه مې د مینې په دریاب لاهو شو
د ډوبیدو به درته څه ووایم
د افغاني زړګي کې مینه د یار
د هیریدو به درته څه ووایم

-----------------------------------

۲۰ /۲ /۲۰۰۸
مهاجرت

## د نجونو میره

(( ما يې تماشه وکړه تله چې د چمن په لور))
(( دا د نجونو میره وه لاړه د ګلشن په لور ))
ما يې تماشه وکړه تله په مکيزونو کې
مسته چې په ناز قدم اخلي په ګلونو کې
حسن ده ښکلا ده دانه ځي دفيشن په لور
دا د نجونو میره وه لاړه د ګلشن په لور
ما یې تماشه وکړه ده د سر درو ښکلا
سروه د بوستان په قد ده د شنو باغچو ښکلا
حوره په ښایست ده دا ځی باغ حرم په لور
دا د نجونو میره وه لاړه د ګلشن په لور
دا دنجونو میره ده ښه ښکاري همزولوکې
داسې وطني ښکلا نشته پدې نورو کې
ځار تر افغانی حسن ځمه دوطن په لور
دا د نجونو میره وه لاړه دګلشن په لور

-------------------------------------------

دیسمبر ۲۰۰۴
مهاجرت

## بنګړي

مانه د زرګر د دوکان
خيالي پاولي غواړي
سپينې ليچې تشې ګرزي
ليلا ځمانه شنه بنګړي غواړي
زرګره نقد ې روپۍ واخله
مانه اشنا د لاس بنګړی په خپل مرضي غواړي
سپينې ليچې تشې ګرزي
ليلا ځمانه شنه بنګړي غواړي
اشنا ځما نه مرور دی
د لاس بنګړي مې خوږ اشنا په بې صبري غواړي
سپينې ليچې تشې ګرزي
ليلا ځمانه شنه بنګړي غواړي
بنګړي د يار په لاس کې خوند کړي
په سپين مړوند د بنګړو شرنګ ښکلې ځواني غواړي
سپينې ليچې تشې ګرزي
ليلا ځمانه شنه بنګړي غواړي

----------------------------------------

۲۰۰۷/۱۲/۲

## څلوريزه

زه افغان يم خپل وطن راباندې ګران دی
اتحاد او ورور ولي څما ارمان دی

چې يې مينه د وطن يې ده په زړه کې
افغاني دا هموطن را باندې ګران دی

---------------------------------------

مهاجرت

## که خپل که بیگانه ده

چا وران کړو دا وطن چا ترې لوټ کړي خزانه ده
که خپل که بیگانه ده
چې خپل یې ورانوي بیا د پردو نه څه ګیله ده
دا څنګه زمانه ده ؟

هر چا تر خپله وسه دا وطن کړلو خراب
څوک ناست دی بلډنګو کې په ډالر کوي حساب
څوک پروت دی په خیمه کې له یخنۍ نه شو کباب
هر چا ده غړولي د خپل خوښې ترانه ده
دا څنګه زمانه ده ؟

په نوم د عدالت دی خو خیانت پکې چالان دی
غریب پدیې وطن کې د ماړه نس په ارمان دی
دا ملک چاته جنت چاته په مثل د زندان دی
هستي یې رانه لوټ کړه د ډالرو یارانه ده
دا څنګه زمانه ده ؟

خلک لاړه تر کیهانه موږ په خپلو کی جنګیږو
پدې عصر وزمان کې د پردو په ډول ګډیږو
نفاق او تربګني کې هېڅ مطلب ته نه رسیږو
وطن په نامه یو شئ صرف همدا یوه چاره ده
دا څنګه زمانه ده ؟

ټینګ عزم افغانی او ورورګلوي مو سعادت دی
وطن ته د بادردو هیواد والو ضرورت دی
یو والی اتحاد زمونږه پوهه دی همت دی
وطن به شي اباد که دا مو عزم او اراده ده
دا څنګه زمانه ده ؟

---------------------------------------------

۲۰۰۸ / ۲/ ۲۵

مهاجرت

# خیبره

خیبره ستا لیدو ته دځلمو سره درځم
ستا ځګو ځګو غرو ته د پښتو سره درځم

اغیار که چیرې لارکې د اغزو دامونه کیږدي
هیڅ ډار مې ترې نه شي ابله پښو سره درځم

زما دنیکو کوریې تاکې ښکلي تاریخونه دي
میړانه نارینتوب او د اسرو سره درځم

پردی که په خپل زوراو په طاقت باندې نازیږي
زه خپله پښتونوا له او شملو سره درځم

دا ستا په سردرو کې د میړانې هدیرې دي
مزار ته یې د سرو ګلو غنچو سره درځم

-------------------------------------

جنوری ۲۰۰۷

# توپیر

ما د خیالونو د باغچو ښاپیرۍ
دهوسونو د دنیا ناوکۍ
په سمه ورځ او په رڼا ولیده
ما یوه ښکلې تماشا ولیده
زه د حسنو میلمه شوم
د ښاپیرو میلمه شوم
هلته زه پوه شوم په دې
چې دخوندونو او خیالونو دنیا
د هوسونو دنیا
درڼا ورځې د خوندونو سره
خوږو وختونو سره
تعبیر په څه انداز دی
توپیر په څه انداز دی
--------------------------
دیسمبر ۲۰۰۵

# یووالی

لا ترڅو به زموږ ګران وطن ورانیږي
لا ترڅو به زموږ کلی لا نړیږي

ورنو لږ څه د تدبیر نه کار په کار دی
په یووالي باندې هر مشکل سمیږي

چې یووالی وروړګلوي یې په نصیب شي
افغانی وطن به خا ماخا جوړیږي

---------------------------------------
۶- ۹ - ۲۰۰۷ کال
مهاجرت

# حالت

زړه ته کله کله راشي مايوسي
خفه کيږود نااهلو په دوستي

که له يوخوامو هجران زړګی کباب کړ
بيا د بلې خوا دی غم د بې وسي

عاقبت به مو وکومې لورته بيايي
چې رټلی ګڼو ژوندد سالوسي

د خوارانوسره خوار يو موږ په طبع
د خانانو دود موځانله لمسوي

موږ چې وګورو د ماتو زړونو خلک
پرې زورېږو ډېر بې حده په راستي

چې د عدل په بازار کله ورګډ شو
د سرو ، سپينو فرق يې وينو سم دستي

موږ په مينه د اشنا هسې صادق يو
چې مجنون ورته عاجزدی په دوستي

افغانی چې دکوم چا په مينه سوزي
د هغه نګار په مينه کړي مستي

-----------------------------------

کال ۲۰۰۵ مهاجرت

## مینه څه ده

دغه چتهٔ ښکلا ګوره
وای په مینه نه رسیږم

خپله مینه کې لمبیږي
وای په چل یې نه پوهیږم

مینه اور مینه سیلاب دی
مینه ژوند مینه کتاب دی

مینه پوهه ده علمیت دی
مینه کار دی شجاعت دی

مینه سیند دی لوی دریاب دی
مینه شرنګ دی یو رباب دی

مینه بحر دی طوفان دی
مینه دا فانی جهان دی

مینه ښه شانتې نغمه ده
یوه ښکلې ترانه ده

دا د ژوند مانا ده مینه
هم د خوند مانا ده مینه

څوک د خدای سره کړي مینه
د عقبا په لارې سر دی

څوک په دی فاني جهان کې
د ریا په لارې سر دی

مینه کور مینه دلبر دی
مینه زور دی او هم زر دی

څوک د کار سره کړي مینه
څوک مین په خپل هنر دی

څوک روزګار سره کړي مینه
هم پیشوا دی هم رهبر دی

د یار مینه زوریدل دي
په سور اور کې سوزیدل دي

د پتنګ انجام د مینې
په لمبو کی لمبیدل دي

د مین په برخه ګوره
مایوسي ده ژاړیدل دي

د جانان مینه د سره
)په سور اور ورته دنګل دي (

---------------------------------

۹ /۱ /۲۰۰۸

# تر څو به دا نفاق وي

راځی چې جوړ کړو دغه وران کلي کورونه
ورونهو تر څو به دا نفاق وي

راځی چې یو کړو دا خواره واره قومونه
ورونهو تر څو به دا نفاق وي

ګودرمو وران پېغلې سرتورې شولې
د وورور ګلوی خبرې نورې شولې
کلي باندې مو رانسکورې شولې
څوبه د بل په لمسون خپل کور ورانونه
ورونهو تر څو به دا نفاق وي

دا وطن مینه غواړي کار غواړي
بیا جوړولو ته یې زیار غواړي
ښکلو باغچو ته یې ملیار غواړي
تر څو به اورو د پردیو پېغورونه
ورونهو تر څو به دا نفاق وي

ورونهو تدبیر او علمیت دی په کار
لوړ شجاعت او صداقت دی په کار
بیا رغونې ته همت دی په کار
راځی پوره کړو د کالونو ارمانونه
ورونهو تر څو به دا نفاق وي

دا مو د کلو او باندو وطن دی
دا د ښایست د منظرو وطن دی
د ولسونو ، پرګنو وطن دی
سره جرګه کړو افغاني ټول ولسونه
ورونړو تر څو به دا نفاق وي

------------------------------------------

۳-۸- ۲۰۰۷ کال مهاجرت

# ځوانیمرګه اوزلیم

یوه مینه یوه ناز یوه ادا وه
یوه ښکلې نازنینه دلربا وه
خوږې سترګې محبت سره اشنا وه
هغه لاړه د عمرونو مسافر شوه

هغه لاړه مور او پلار یې په غم ژاړي
د ځوانۍ د مرګ بهار یې په غم ژاړي
زموږ کلی زموږ ښار یې په غم ژاړي
اوس هغه د مور او پلاره مرور شوه

تر سهاره پرې د غم او ښکې جاري دي
مور او پلار یې اوس د غمه لېوني دي
نا امیده په ژړا خپل او پردي دي
په ځوانۍ کې دا پېغلوټه چیرته سر شوه

نن اسمان دی په دې کلي راولیدلی
دلته هر سړی بې حده زوریدلی
دې ماتم کې هر چا ځان دی خپل ګڼلی
ښه ځواني یوه ښکلا نن د نظر شوه

ربه ستا دنیا ده لویه ته بادشاه یې
هم د خان هم دغریب هم د ګدا یې
ته په خپله په خپل کار باندی اګاه یې
نن خور لاڼه مې د لور خاورې په سر شوه

------------------------------------------

۲۰۰۷ /۲ / ۲۰۰۷ ماین اشف جرمني

# د نیکو وطن

خپل وطن مو وران شو شو محتاجه د پردو وطن
خوږ دی خلکو خوږ دی د پلرو او د نیکو وطن

دلته مجبوری ده هر قدم کی تکلیفونه دی
دلته بی وسی ده هری خوا ته پیغورونه دی
بل غوندی قانون دی مایوسی ده زحمتونه دی
هر قدم پردی دی راته ښکاری د میرو وطن
خوږ دی خلکو خوږ دی د پلر او دنیکو وطن

څه خو په وطن کی ډیربی شمیره شهیدان شول
ډیر نور د ابرو خلک بی کوره بی کاروان شول
څوک بیا په پردی وطن کی پاتی په بیابان شول
دا نسل لا پریږده چه مو وران شو دلمسو وطن
خوږ دی خلکو خوږ دی د پلر او دنیکو وطن
څو مره شو بی قدره په بل ملک کی چه اوسیږو
دلته هر قدم کی د افغان په نوم زوریږو

ټول عیب په نفاق کی دی په دی هم نه پوهیږو
وران شو د شملو وطن د کلو او بانډو وطن
خوږ دی خلکو خوږ دی د پلرو او د نیکو وطن

راشی خوږو ورنو سره یو شو د افغان په نوم
څو به دا نفاق وی چه بیلیږو این او ان په نوم
لاس د وروری ورکړو د اخلاص او د ایمان په نوم
جوړ کړو افغانی وطن د سولی او جرګو وطن
خوږ دی خلکو خوږ دی دپلرو او دنیکو وطن

# حالات

په مونږه ځومره چې وختونه تېر شول
هومره عبث میاشتې، کالونه تېر شول

دا به تقدیر وه که مو خپله ګناه
په ژوند مو ځومره کړاونه تېر شول؟

خلک ښه ژوند ته ترکیهانه لاړل
ز مونږ عبث ټول فرصتونه تېر شول

دغه حالاتو په مونږ څه ونکړل
زمونږ روزګار کې ټول غمونه تېر شول

یوه لحظه ارام مو ونه لیدو
څه ناکراره مو فکرونه تېر شول

خپلو مینځو کې جنګوي افغانان
ځومره وحشت ځومره ظلمونه تېر شول

ګډ شوه په ډول د اجنبي رنګ په رنګ
څه بې وقاره حیثیتونه تېر شول

هسکه شمله مو دنیکو شوه ټیټه
د پردو رسم او رواجونه تېر شول

دا بې فرهنګه د فرهنګ تر نامه
زمونږ د کلتور اوله دودونه تېر شول

د ا د تاریخ او افغانیت دښمنان
دوی مو لستوڼي کې مارونه تېر شول

افغاني ! نه رسي منزل ته هغوی
چې د وطن او ولسو نه تېر شول
--------------------------------------
۲۰۰۸ - ۱۲- ۲۸
برول - جرمني

## موقعه

دا ژوندون یوه موقعـــه ده
د چاته لنـــډه چااوږده ده

دا مـــوقعه ده هغه چاله
چې فرصت لري سبـــا له

خو په هر شي کې انجام شته
څوک صادقه هم بدنام شته

یوه او ښــه خلک تیر شوي
بد په بد نامـــه یاد شوي

خـــاطرې ترې پاته کیږي
نیک په ښه نامــــه یادیږي

د ژونــــدون په پړاوو کې
په وختــــونو زمانو کې

ډیر ؤ ستر ستر قدرتـــونه
دبـــدبې وې مقـــامونه

دلته سترې بادشـــاهۍ وې
ډیرې لـوې امپراتورۍ وې

څوک چنګیز په شان مغرور ؤ
نا پیـــلون هم لوی باتور ؤ

لږ عبرت ژوندته پــکار دی
کبر جن سرۍ تل خـــوار دی

نن دا مست چې پــه ډالر دي
دوی د ځــــانه بې خبر دي
سبا خـــدای له پــه رفتن دي
بس محتــــاج د يو کفن دي
»»»
۲۷ - ۸ - ۲۰۰۹

# زموږ مينه

دا د مينې عجيبه لويه دنيا ده
ځوک په مينه کې مجنون ځوک يې ليلا ده

چې په مينه محبت کې دی تېر شوی
مينه کړې ده درخو ده که رابيا ده

مينه څه ده مينه سيند دی لوی درياب دی
مينه پوهه ده علميت مينه کتاب دی

د يار مينه زوريدل دي بل څه نه دي
په سور اور کې سوزيدل دي بل څه نه دي

د پتنګ د مينې بد غوندې انجام دی
په لمبو کې لمبيدل دي بل څه نه دي

زموږ مينه زموږ ګران افغانستان دی
زموږ مينه زموږ ژوند زموږ ايمان دی

بی وطنه چې اوسيږي په غربت کې
خوږ ژوندون ورته په مثل د زندان دی

زموږ مينه زموږ هيله ده ارمان دی
اتفاق او ورورګلوي د هر افغان دی

دا وطن په ورورګلوۍ باندې جوړيږي
په يووالي باندې هر مشکل اسان دی

د وطن غیرت کې مې کور دی
ما ته پردي مالت کې خوب کله راځینه

د وطن خاورې به رانجه کړم
دا پردیسي ژوندون مې هردم زورو ینه

چې مو تاریخ ته نظر وکړو
جګې شملې مو د پلرو را یادې شینه

دا مو په خپله په ځان وکړه
چې د پردو په لمسون خپل کور ورانو نه

راځی چې خپل وطن اباد کړو
تر څو به ګالو د پردیو پېغورونه

وطن د ټولو شریک کور دی
دا دشمنان مو په قومونو بیلو ینه

د اتفاق نه هرڅه جوړ شي
راځی چې یو کړو افغاني خواره قومونه

---

۱۲ / ۱ / ۲۰۰۸

# راشه چه سپرلی دی شم

راشه چه سپرلی دی شم گلزار دی شم
راشه چه د بدی ورځی یار دی شم
ستا د پاکی مینی محبت کی یار
ژوندشمه وږمه شمه بهار دی شم
نه شته بله لار نه بل تدبیر چیری
راشه چه مرهم دی شم قرار دی شم
ته ما ته پ‍ه مینه مینه وګوره
زه به دی لمبه شمه انګار دی شم
ما سره جذبه د ه محبت زړه کی
راشه چه کاکل دی شم سینګار دی شم
مینه د اخلاصه سره خوندکوی
راشه چه د مینی وفا دار دی شم
هسکه غاړه زیب لری امیل سره
راشه چه د سپینی غاړی هار دی شم
شرنګ دی د پایزیب په زړګی ښه لګی
راشه چه پایزیب دی شم شرنګار دی شم
۲۲ - ۵ - ۲۰۰۹

# په کوز او بر کی

په کوز او بر کی نن بی شمیره انسانان مری
له هری خوا نه افغانان مری

څوک د طالب څوک ترهگر په نامه
څوک داجیر څوک دنوکر په نامه
زموږ زاړه زموږ تنکی، تنکی ځوانان مری
له هری خوا نه افغانان مری

دنیا روانه ده کیهان لټوی
په علمیت کی ټول جهان لټوی
زموږ مکتب زموږ شاگرد پوه استادان مری
له هری خوا نه افغانان مری

موږ انسانیت او عدالت یادو
موږ تل انصاف او صداقت یادو
خو په عمل کی هم منصف هم مسلمان مری
له هری خوا نه افغانان مری

تر څو به خپل میځ کی جنگونه کوو
د بل په لمسه ورور وژنه کوو
څه بی حسابه مو تورسری، ماشومان مری
له هری خوا نه افغانان مری

دلته کی مینه محبت مری
دلته افغان دلته همت مری
دلته ناهید او د نازو انا لمسیان مری
له هری خوا نه افغانان مری

راځی ای ټولو ډلو ډلو خلکو
په بیلو لاروویشل شوو خلکو
که یولاس نشو هم وطن هم موایمان مری
له هری خوا نه افغانان مری

------------------------------------------

۴ - ۸ - ۲۰۰۹

# د یار مینه

د یار مینه زوریدل دي بل څه نه
په سوراورکې سوزیدل دي بل څه نه

چې د چا په زړه کې اور د مینې بل شي
مایوسي ده ژړیدل دي بل څه نه

د پتنګ د مینې بد شانته انجام دی
په لمبو کې لمبیدل دي بل څه نه

د جانان مینه د سره قربانی ده
په سوراور ورته دنګل دي بل څه نه

----------------------------------

۲۲ - ۳ -۲۰۰۸

# ياره ستا راتلو سره

باغ به مې ګلزار شي ياره ستا راتلو سره
ژوند به نوبهار شي ياره ستاراتلو سره

ياره ستا د ښکلي مخ چرته هم ثاني نشته
زړه به ځوان ماليار شي ياره ستا راتلو سره

هسې محبت چه کړی توربورا په ګل باندی
داسې به روزګار شی ياره ستا راتلو سره

زړه خو ستا د خوږ زړګي خوږ نظر په تمه دی
روغ به دې بيمار شي ياره ستا راتلو سره

ښکلي ارزوګانی دي ښکلو ارمانو نه سره
ورک به مې تلوار شي يار ستا راتلو سره

ګل به خجالته وي ستا ښکلي رخسار نه بيا
لرې به اغيار شي ياره ستا راتلو سره

زه خو د وفا تمه صرف خپل اشنا نه کړم
زړه به مې قرار شي ياره ستا راتلو سره

ما دې د ښايسته حسن لوړ انداز ليدلی دی
ژوند به لاله زار شي ياره ستا راتلو سره

زه په افغاني رسم يار ته تمه ، تمه يم
خلاص به انتظار شي ياره ستا راتلو سره

----------------------------------------

١٧ / ١ /٢٠٠٩

## څه تمه وشي ؟

دغه تغیر او بدلیدو نه به څه تمه وشي ؟
د جهانخوارو د وعدو نه به څه تمه وشي ؟

دا به رښتا وي هغه څه چې دوی وعدې ورکوي؟
د نوي مشر تدبیرو نه به څه تمه وشي ؟

خلکو د ظلم او ورانکاره سرمایې نظام نه
ددو هوښیاره لېونو نه به څه تمه وشي ؟

روزګار به بیا خپل ازموینه را څرګنده کاندي
زموږ د بربادو ارمانونو نه به څه تمه وشي ؟

هغه ظالم پاچا د ظلم دانجام نه وروسته
د دغه ځوان د کړو وړو نه به څه تمه وشي ؟

خلکو دا ظلم دا وحشت به وی تر کومه پورې؟
خاونده ستا د قدرتونو نه به مو تمه وشي ؟

دغه ناتار چې نن سبا په ولسو روان دی
ددې وحشت دختمیدو نه به څه تمه وشي ؟

که داسې نه وي نو راپاڅه ای مظلوم تبره
یو لوی تحریک د ولسو نه به څه تمه وشي

افغاني ستا کلي بانډې چې ورانوي نه ګورې؟
ددې ورانکار سرې خورو نه به څه تمه وشي ؟

----------------------------------------

۲۰۰۹ - ۱ - ۲۹

مهاجرت

# جلا وطن

دا موږ څومره بد نصیب یو
په پردو کې چې ا وسیږو
نه د ځان نه د قریب یو
غیر ملکو کې چې اوسیږو

وطن مور وطن عزت دی
وطن مینه محبت دی
اوس مو وران دی د زړه کلی
شوګیرو کې چې اوسیږو

دغه څوک دی چې یې وران کړو
نن احتیاج یې د جهان کړو
دا دکوم ظالم له ظلمه
تورو شپو کې چې اوسیږو
کاش د خپل وطن بزګر وای
یا چوپان وای یا کارګر وای
اوس په بل ملک کی نوکر یو
په چرتو کې چې اوسیږو

دلته بل رنګ ترانې دي
دلته بل شان ته نغمې دي
موږ د خپل مالت نه لرې
په میرو کې چې اوسیږو

نه ځما د کلي خوند شته
نه هغه د یاري رنګ شته
دلته مینه بازاري ده

په دوکو کې چې او سيږو

دلته زړونه دي مات شوي
د مستي نه دي وليدلي

هر قدم کې مايوسي  ده
په سلګو کې چې او سيږو

که لوی خدای مو مهربان شي
د رحمت په موږ باران شي
په وطن کې مو وروري شي
خپل باندو کې چې او سيږو

ربه موږ  هم بنده ګان يو
د يو خوږ ژوند په ارمان يو
)کاش چې ورکه محتاجي شي (
اميدو کې  چې او سيږو

افغاني وطن سور اور شو
تر اسمانه لوګی خپور شو
اه فرياد او بيوزلي ده
تورتمو کې چې او سيږو

-------------------------------

۷ - ۲ - ۲۰۰۹

# درحمان با با مزار

چې د رحمان بابا مزار ورانوي
د پښتنو ستر افتخار ورانوي

دا د فرهنګ او د ادب دښمنان
زموږ کلتور زموږ یادګار ورانوي

زموږ تاریخ ته دوی په سپکه ګوري
دوی زموږ ځلې او منار ورانوي

نن د صوفي عبدالرحمان په پلمه
د تصوف پلونه او لار ورانوي

دوی د انصاف او انسانیت نه لرې
نن که رحمان سبا انصار ورانوي

دا تنګ نظره دتعصب لېونیان
د افغانانو کار او زیار ورانوي

اغیار به دا ارمان تر ګوره ویسي
چې د افغان ولس ګلزار ورانوي

افغاني ! زموږ د پرګنو یووالی
د دښمن ځاله او اعتبار ورانوي

-----------------------------------

۸ / ۳ / ۲۰۰۹

مهاجرت

# شوګیرې

زه لـه حیـــــا یار ته کتلی نشم
دزړګي راز ورتــــــه ویلی نشم

دیار منت مې په لیمـــو قبول دی
د بل احســـان په ځــان منلی نشم

داستـــا په مینه محبت کې اشنـا
دهـــجر ژونــــد نور تیر ولی نشم

ستا به پدې کله یقین پیـــدا شي
زړګی لـــه تا نـــه صبرولی نشم

ها ستـــــا د کلي دکوڅو یادونه
خــــوږې شیبې یې هیرولی نشم

افغـانی ژوند په شوګیرو تېرېږي
باران د او ښــــکو درولی نشم

----------------------------
۷ - ۷ - ۲۰۰۹

# ګیله مند

زه د حالاتو نه په تنګ راغلم
د خپل تدبیر سره په جنګ راغلم

ما ویل چې ښکل به کړم روښانه لاره
په سرنوشت کې د پتنګ راغلم

زه د خپل ملک د پادشاهي په هیله
خو په حساب کې د ملنګ راغلم

ما سره ښکلي ارمانونه زړه کې
خو نامراده ترې په څنګ راغلم

هغه حساب چې مې د ژوند درلوده
زه په مسیر کې د نیرنګ راغلم

ما ویل چې زه به خپل منزل ته رسم
په حقیقت کې په بل رنګ راغلم

د پاکو هیلو ، ارمانونو ښار نه
زه افغانی تری ګیله من راغلم

--------------------------------

۱۸ - ۳ - ۲۰۰۸
مهاجرت

## افغان ځوان

چې خپل ژبې ته خدمت کړي په ښه شان
په مرچل کې ورته پروت د ی د افغان

نازولي يې مدام خپل مشران دي
احترام ورته کوي په هرزمان

ښکلی ځوان دی هم ساتونکی د سنګر دی
د دښمن سره يې لاس دی په ګريبان

لوړ احساس يې دوطن خېره کې ښکاري
ربه ته د دغه ځوان شې نګهبان

ډېر غمخواره استعداد راته ښکاره شو
په خدمت دخپل وطن کې افغان ځوان

د ميرويس او احمد شا بابا خدمت ته
شپه او ورځ يې يوه کړي په ايمان

د نازو او د ملالې خدمتګار دی
خپل ولس ورته د هر څه نه دی ګران

همېشه دی د ټاټوبي په خدمت کې
تل نازيږي په تاريخ د لوی افغان

ربه ته د با احساسو ساتندوی شې
لوړ همت راته ښکاره شو افغان ځوان

............................................................

۲۰۰۹- ۳- ۲۲

# ځوانیمرګه غزال

زموږ کلي زموږ ښار کې انګازه ده
جګه شوي د ښکلا نن جنازه ده

خښوي نن نامراده ارمانونه
د غزال د پېغلتوب ورستې شېبه ده

نن د زړونو د داغونو حساب نشته
د غربت د ماتمونو یو بیلګه ده

پدې ویر کې هر یو ډېر دی ژړیدلی
که سپین ګیری یا که ځوان که ښځانه ده

ارمانونه د ځوانی نن خاوری کیږي
عجیبه شانې د غم بده شېبه ده

پدې خلکو نن د غم د پاسه غم دی
پدې کلي نن راتاو د غم څپه ده

ربه ته د مور او پلار یې نګاهبان شې
دا مو هیله دا امید دا مو توبه ده

تا پیدا کړو ته مو وژنې ته مالک یې
ستا ورحم او کرم ته مو سجده ده
ربه ته یې جنتونه ور نصیب کړې
ښایسته پېغله غزال جان مو ستا میلمه ده

---------------------------------------

۱۷ - ۳ - ۲۰۰۹

اشفنبورګ والډفریتوف

جرمني

## نیمګړې هیلي

د ژوند بهیر په بیړه بیړه درومي
تل خوشحالي او د زړه سر دې نه وي

کله نا کله داسې ډېر پیښیږي
چې څه کړې حاصل او بر دې نه وي

داسې هستي زمینداري به څه کړې
ځمکه دې ډېره وي بزګر دې نه وي

او یا د ځمکې د حاصل نه ورسته
فصل دې پوخ وي او لوګر دې نه وي

هغه تنها د بېوسۍ موقعه کې
مشکل دې ډېر وي کمک ګر دې نه وي

ملیاره !ته به هم خوشحاله نه وې
چې نیالګي کښنوې ثمر دې نه وي

ژمی به څنګه په خوښۍ کې تېر شي؟
چې بام څڅیږي او خټګر دې نه وي

دا تنهایي به څه لذت ولري
په کور کې ناست یې او دلبر دې نه وي

د داسې وصله نا امیده یې تل
واده دې کړی وي پسر دې نه وي

چې د اشنا په تمه تمه ناست یې
ورځ دې اوږده شي مازیګر دې نه وي

یا په چرتونو او فکرونو د یار
شپه دې اوږده شي او سحر دې نه وي

د شـــوګـــیرو د خپل جانـان نـــه وروسته
خـــوب دي راغلی وي بستر دې نـــه وي
چي غـــريبي او بـــې وسي وي مــــدام
پـــه تبه پروت يې او ډاکتر دې نـــه وي
چي کلـه کلـــه خـــوشحالي پيښه شي
پرواز دې زړه غـــوا ړي وزر دې نـــه وي
د بــې انــصاف درزي دظلـــمه وروستـه
کالي دې جـــوړ وي خو ټـــټر دې نـــه وي
داسي وخـــتونــه د نیمګـــړو هیلـــو
کلـــه پيښيږي چـــي هنـــر دې نـــه وي
يا کـــه پـــه هر څـــه باندي پوه يې مګر
پـــه لاس کې زور نلـــرې زر دې نــه وي
داسي تنـــدی هـــم پــــه داغلـــو ارزي
چـــي خوښې نلـــري اختـــر دې نــه وي
يــــو خـــوږ ارمان لرو پـــه زړو کې ربـه
چې نور جنګ نـه وي ستمګر دې نه وي
خاونـــده بــــيا هـغه وختونـــه غـــواړو
پښتانـــــه يو کړه لر او بر دې نـــه وي
۴ - ۵ - ۲۰۰۹

# نیک عمل

دنیا د نیک عمل ده
بدان رټلي دي
چاچې راستي کړي ده
رب ته منلي دي
دنیا دنیک عمل ده
بدي په کار نده
دا بد عمل چې پرې ځي
دا سمه لیار نده
پرهیز ګاران د دنیا
پاک او سپېڅلي دي
چاچې راستي کړي ده
رب ته منلي دي
دا دنیایي کار او ژوند
هسې روان دی نا
چې څوک پرې نه پوهیږي
غافل د ځان دی نا
د خدای رښتنی مخلوق
پرې پوهیدلي دي
چاچې راستي کړي ده
رب ته منلي دي
ته سزاوارېې ربه
د عبادت مدام
که مو نصیب شي چېرې
ستا مرحمت مدام
شېطان رټلی ګڼو
تا فرمایلي دي

چاچې راستي کړي ده
رب ته منلي دي
لاس په دعا يو ربه
ته مو سبحان يې
ته مو پوره کړې حاجت
ته نګهبان يې
افغاني ! ستا په لار کې
هر څه منلي دي
چاچې راستي کړي ده
رب ته منلي دي
۲۰۰۹ - ۵ - ۲۰

## مناجات

ربه ستا دربار دی لوی
موږ یو ټول ستا ثنا ګوی

ته عزت چا ته نصیب کړې
څوک ذلیل کړې سیاه روی

تفاوت لري خالقه
ستا مخلوق په رنګ او خوی

یو هوښیار کوي کارونه
بل جاهل بې ادب لوی

څوک ظالم خانه خرابه
دی مکاره دروغګوی

ربه تا دي پیدا کړي
څوک عاجز څوک فضول ګوی

تکبر چې پکې نه وي
ها عالم د عقله پوی

چې په پوهه علمیت مري
د هغوی شته دوعا ګوی

چې په جهل کې پیدا شي
خدای دې نکړي چاته لوی

چې په سمه لاره سر دی
افتخار په داسې ځوی

نورو صلحه کې ژوند تېر کړ
موږ په جنګ کې شو را لوی

***

۲۰۰۹ – ۸ - ۲۵

# ځاروان

دغه څوک دی چې ځاروان دی
رهنما مو د کاروان دی

دا مو خپل که اجنبی دی
که مو خپلو کې پردی دی

دوی کې لویه ځان ځاني ده
راته ښکارې بې ایماني ده

دي بې لارې ټول منزلونه
تورې شپې دي ګړنګونه

په بې لارو ، لارو سر دی
د کاروانه بې خبر دی

هر یو ځان ، ځانله غره دی
که ځاروان دی که ساده دی

دی کاروان کې انسانان دي
څوک سپینږیري دي ځوانان دي

هم تور سرې ، ماشومان دي
څوک تنکي تنکي ځوانان دي

دوي کې مینه ده وروري ده
پاک احساس ، مسلماني ده

دوي په تمه د ژوندون دي
په امید د سباوون دي

ای ددې کاروان ځاروانه
لږ خبر شه د کاروانه

ستا غفلت کې نابودي ده
ستا همت کې زندګي ده

لږ دمه شه ای مغروره
ځان فارغ کړه له غروره

دلته زړونه په لمبو دي
امیدونه په سلګو دي

په صحیح لار مو روان کړه
ته مو سیال د دې جهان کړه

افغاني احساس اشنا کړه
دی تیارو نه جوړ سبا کړه

---------------------------

۹ - ۵ -۲۰۰۹

جرمنی

## د غم څپې

په مورِ د مرګ بدې څپې تیرې شوې
څه عجیبه شانتې صحنې تیرې شوې

د زړه ګوګل ته مو لاس ویوړو رقیب
د درد او غم بدې شیبې تیرې شوې

د ژوند مفهوم زمورِ بې رنګه شولو
د نابودیو ولولې تیرې شوې

ها امیدونه ارزوګانې د ژوند
ټولې نیمګړې قافلې تیرې شوې

راځې چه واخلو عبرتونه تر ژوند
داسې په مورِه چه تیارې تیرې شوې
پدغه ژوندکې اعتبار کله شته
د خود غرضو ناکردې تیرې شوې
د ژوندون پا ې کې مایوسې څه پکار
د ښه عمل ښې خاطرې تیرې شوې

دلته دا څوک دې چه مغروره ښکارې
فانې دنیا شیبې ، شیبې تیرې شوې

افغانی رب ته د سجدو موقه ده
ګنې موقې مو د توبې تیرې شوې

------------------------------------
۸ - ۵ - ۲۰۰۹
مهاجرت

# څه وشول ؟

زمـــوږ کلي او ګلزار بانــدې څـــه وشـول
په سپرليـــو ، نوبهــــار باندې څه وشول

بوراګان د بـاغ پـــه لــــوري نـه رادرومي
په دې خوارغريب مليـــار باندې څه وشول

چې د خيـــاله يې رخســــار په اوربل پټ وه
په هغه ښــــکلي نــګار باندې څـــه وشول

نه ادم شتــــه ، نه رباب ، نه هغــــه مينــه
د فرهــــــاد د زړه قرار بانــدې څـــه وشول

دلته هرڅــــــه دي وران شوي ويجــــاړيږي
زموږ کلي زموږ ښــــار باندې څـــه وشول

دغه څوک دی چې په خپلو کې يې وران کړو
ولســــونو او اعتبار باندې څــــه وشـول

دا څــــــــه وشول څــه به کيږي نه پوهيږو
زموږ د خلکــــو په وقــار باندې څه وشول

د ظا لمــــــو او بې رحمـــــو زور چليږي
افغاني ! زموږ روزګار باندې څـــه وشول

-----------------------

۲۰۰۹ - ۵ - ۱۹

مهاجرت

# یا ره ستا په اننګو کی...

ځنګه چه ښایست یې د اشنا په اننګوکې دی
هسې یې غزل د نا اشنا انځوره وو ځی

د ځوانۍ په وخت به چه د چا د ښادۍ مراسمو ته تللو ، نو په تلو تلو کې به دا پوښتنه طرحه کېدله چه څه به یې پاخه کړي وي ؟ د غوښې سره شوله که بې غوښې ؟ خوندور ځواب «پولاو» و. مګر زما او زماغوندې ، د ځینو سرګشته و ، نه دا پوښتنې خوښېدلې او نه دا ځوابونه. زمونږ په زړه پوری پوښتنه داوه سندرغاړیې څوک دی ؟ اسلم ، بادام ،فیض ګل ،حافظ ، مشکي ،بسم الله، ایوب ، رحمتګل ، ګلرنګ...یا ؟ واده ته به ورسېدو څه شی به چه تیار و هغه به د یار و ،هغه به مو په خوند خوند وخوړل ....

بیا به له ماسخوتنه تر سپېده داغه پورې د سندرو په اورېدو نه مړېدو. د بهاړي ، بیرمې ، بیاګ ، کستوري ،کلیان ، اسا او جوګ په راګونو کښې به مو سندرې: مقام ، غزل ، لنډی ، چهار بیتې ، لوبې ،بګتۍ... او په هغو کښې به مو په ډېره مینه ، دمینې سندرې اورېدلې. دیار دمینې ، د وطن د مینې او د خدای دمینې د استاد الفت دمینې دیو غزل دا بیت الغزل ، د هماغه زمانو یادګار دی.

چه په حجرو کې یې د عشق سندری
هره شپه اورم ننګرهار ښه دی

مګر اوس ، دماشیني نړۍ د ترقۍ او پر مختګ په زمانه ، په یویشتمه سدۍ ، یا د کمپیوټر په دوران کښې پر مونږ بدبختانو ، ددې ورستیو دېرشو کلونو ، د پرله پسې تېل شویو خونړیو جګړو ، د نړۍ د راز راز پرمختللیو وسلو د ازموینو د درز او دروز پدې دوزخي زمکه او اسمان کښې ، چه د چا خپلوان ، عزیز ، دوست او اشنا د ښادۍ کارت راشي ، نو کارت وګورو چه د شپې له خوا ، د یو مجلل عصري هوټل تالار ته یې بللي یو. مننه مبارک دې شي.

هلته د خوږو غم نه وي ۰ د هر مېز ګرد چارپېره دولس تنو غذا سرویس کیږي ، شوله خو درک نه لري ، ثلور پنځه ډوله پولاوونه ،ثلور پنځه ډوله غوښې ،سالندونه ، فیرنې ګانې ، مېوې او کوکا کولا ګانې ۰۰۰۰
دولس واړه زمریانو مېلمنو حمله په غوښو وي ۰ وریجې هسې پاته شي ۰ هسې هم زیاتره یخ کړي شیان باسي او د پرون ، بل پرون او لرغونیو پرونونو د ودونو پاته شوني وي ۰
خدای دې د هغو مل شي چه وخت ناوخته یې د وینې د فشار یا د معدې د تېزاب درجه جګیږي۰۰۰۰
راغلو د سندرو اوریدلو ته :
هلته سندرغاړو ته ډیر ښه ستېژجوړ شوی وي ۰ په اوتو کړیو دریشیو او ښکلو نیکټا یې ګانو ، منظم او مهذب ،))هنر مندان ((او کله نا کله)) بې هنران ((ناست وي او سندرې غړوي ۰ هغه سندرې چه موږ په ځوانئ کښې اوریدلې هغه نه ، هغه استادان خو زیاتره وفات شوي دي ۰ خدا دی یې وبخښي !د هغو د زامنو لمسیانو څخه ، خدای دی یې لري ، سندرې اورو سندرې خو سندرې وي)) خو ((، بیا هم))خو ((، خو دنوي عصر د تخنیک زور هم ور سره شیي ،او د موسقئ خوږ اواز ، دراکټونو ، توپونو او بمونو د اواز غوندې اوچت شي او غوږونه کڼوي ۰
په یو واده کښې ، همدا چه ډوډئ مو ونغړله ، نو یو ملګري راته په څه طنزي لهجه : ویل
استاده !که دې خوښه وي نو رسخت به واخلو ، وبه تښتو ۰
ما وویل: ولې ؟هغه وویل: ته پوهیږې چه افلاتون ویلي دي: )) موسقي د روح غذ ا ده ((۰ مګر ۰۰۰۰۰زه پوه شوم۰ پاڅېدو ۰ په ولاړه حالت کښې ما وویل: بېشکه !که الله پاک پدې یوویشتمه پېړئ کښې ، افلاتون را ژوندی او یا زموږ په ټولنه کښې نوی افلاتون را پیدا کړي ، نو پر موږ به د هغه ذات د بې شمېرو احسانونو تر څنګ د هغه دا احسان هم وشي۰ چه ، دې زمانې ځینې کسانو ډېر تبلیغ کړی دی چه)) فلسفې افلاس

کړی دی (( ددې پرو پاګنډې په اثر د نړۍ د فیلسوفانو بازار سوړ شوی ،او د هغو پر ګدۍ سفسطه بازان ناست دي٠ اودې سره نړۍ د فلسفې په افلاس اخته شوې ده٠ نو نوی افلاتون به خپله هغه زړه خبره ))موسقي د روح غذا ده (( بیرته واخلي اوداسې حکم به صادر کړي)) موسقي د روح عذاب دی !((٠
او دې سره به د فلسفې او فیلسوفانو ارزښت هم یو په دوه شي٠
چه روان شوو د موسقۍ لمړنی درز پورته شو ٠٠٠ځو چه د تالار دروازې ته ورسیدو ، د سند رغاړې غږ مو تر غوږ شو٠
یاره ستا په اننګو کې
چه د چا د وینې رنګ دی ؟
زما د پاکې مینې
حقیقت پکښې څرګند دی٠٠٠٠٠٠
او درزی درزی ، درزی درزی ٠٠٠٠
نه پوهېږم چه ددې سندرې بخت او طالع وې ، که د نورو ټولو اوسنیو په خلاف ددې سندرمارو مهارت ، چه د شعر د الفاظو د ادا کولو پر مهال یې د موسقۍ د الاتو غږونه ډېر ټیټ کړي وه٠
نو ملګري مې وویل :
ها ٠٠٠٠ د حمزه بابا غزل وایي٠
همدلته لږ څه ودرېدو او سندره مو تر پایه واورېدله او یو څه خوند مو ترې واخیست٠
یو څه پدې چه د سر تاوولو په وخت بیا د موسقۍ په اوازنو د توپونو غړمبهار جوړېده او زمو غوږونه یې کڼول ٠٠٠٠زه خو ودونو ته ډېر نه ځم٠ که د سیا لۍ شریکۍ د ډیرې بې اندازې مجبورېۍ نه ولاړ هم شم ، بیا ورته ډېر نشم کښېناستلی٠خو دا سندره مې بیا بیا څو ځله د راډیو ګانو او تلویزیونونو له لارې ډیرو مختلفو سندرغاړو په اوازونو کښې ، د موسقۍ د سم ، مناسب او معتدل غږ په ملګرتیا اورېدلې او خوند مې ترې اخیستی دی٠

خو !
خو څرنګه چه یو د سندرې په کسر کښې د هغه د شاعر نوم یا تخلص نه اوربدل کېده او
په هوټل کښې د خپل ملګري نه می اوربدلي وو:د حمزه بابا غزل۰۰۰۰
نو د غزل په مکرر اوربدو به مې دا تلوسه زیاتېدله چه که د غزل په کسر کښې د شاعر
نوم یا تخلص واورم۰
حمزه بابا خو د خپلو غزلو په کسرونو کښې خپل نوم ځای کړی دی او دلته۰۰۰۰؟
بیا دې ته مې پام شو چه ددې ښکلي غزل په قافیه کښې لفظي ترادف او همغږي نشته۰
د سر دواړه مصرعو د قافیو الفاظ )رنګ - او -څرګند (دي او ددوهم بند هغه)خوند ( او
د نورو بندنو دغه) ملنګ ، رنګ ،پتنګ ،او ځنګ ( دی۰
زه خوشحاله شوم چه د اولسي شاعرانو په شعرونو کښې ، د عربي په شان ، دا کار
شوی دی او کېږي ، ښه شو چه د چه د حمزه بابا په حواله ،په دیوانی شاعری کښې هم ،
ددې))ازادئ (( جواز پیدا شو ۰خو افسوس چه د ظالمې زمانې له خوا ، پر مورږ
خوارانو باندې د )) ازادئ (( د خورږو پیرزوینه کمه ده یا نشته۰۰۰۰
عبدالرحیم یوه ) سي -ډي ( یا ) ډي -وي -ډي (چالانه کړې وه۰ ما په هغه کښې دغه
سندره د )نازیه اقبال ( په اواز کښې اوربدله او کسر ته یې منتظر وم۰ دی کښې زمورږ د
انګړ ور وټکید ۰عبد الرحیم ولاړ۰ ډیر زر بیرته راغی۰
په دوه اتیا مخونو ، د کمپوز شویو شعرونه همدغه مجموعه یې راکړه او راته یې ویل:
! )افغانی صاحب ( غواړي چه پدې کتاب باندې څه ولیکې
د مجموعې پاڼې مې واړولې ۰ ) دمینې رنګ ( غزل)یاره ستا په اننګو کې ۰۰۰۰ ( مې سر
تر پایه ولوست او ایله وپوهیدم چه دا ښکلی رنګین شعر ، د همدې مجموعې د
ویناوال ښاغلي سمیع الدین افغاني دی۰
څو نور شعرونه مې هم و لوستل۰ زیاتره خوندور وو۰ ستړی شوم۰ په چرت کښې ولاړم
۰ هلته د )ویښ زلمیانو ( په باره کښې کتاب لیکم۰ دلته زما د )یو دوه ګوتې کاغذ۰۰۰ (
د کتاب څه د پاسه دیارلس سوه مخونو ، پروف راته پروت دی۰ زوړ یم او جوړ نه۰

ډاکتر راته دوینو دغوږ د لېږي کولو لپاره دوا نه ده راکړې او د هرسهار یو ساعت سپورت او د مازیګر دوه ساعته د پلي ګرځېدو سپارښتنه کړې ده ۰او دې سره دا عزیزان ، دا کتابونه او دا تقریظونه ، په دې وضعه ۰۰۰۰
مازیګر وه ۰ پاڅیدم ۰ په چکر شوم ۰ زموږ دکور مخې ته سرک نوی قیر شوی دی ۰
مازیګر په همدې ځم راځم ۰روان یم ۰ یو څه وړاندې ، په کوڅه کښې ځو تنه ماشومان وو ۰ لوبې یې کولې ۰ یو څه باد هم چلېده ، دکوڅې دوړې یې هم بادولې ۰ چه ورنژدې شوم ،وپوهیدم چه ماشو مان په
ګډه ، د یو کوره س په شان ، په خپل ماشومانه غږ ، دا سندره وایي :
یاره ستا په اننګو کې ۰۰۰۰
پوه شوم چه دا سندره اوس نه یوازې د مشرانو استادانو هنر مندانو د خولې سندره ده ، بلکه د ځوانانو او ماشومانو دخولې سندره هم ګرځېدلې ده ۰
خو یره کشکې په ودونو کښې ، هغه د توپونو دګړزهار په ځای همد غسې ماشومان همد غسې سندرې ووایي ۰۰۰۰
په چکر چکر کښی ، زما په ذهن کښې ، نژدې د څلویښتو کلونو دمخه یوه کیسه راتداعي شوه ۰
او داسې :
و ، نه و ، زموږ د هېواد یو وزیر و ، له نامه سره یې د )ډاکټر ( علمي لقب هم لګېدلی و ۰ ډاکټر وزیر په دې مشهور و چه پښتو او پښتنو سره ډیره مینه لري ۰ ډیرو کسانو به ویل چه په ډاکتر صاحب باندې وطن ډېر ګران دی ۰ هغه ډېر وطنپال شخصیت دی ۰
یوازې ښاغلي صفی الله اسد سفیر به ویل :
افغانستان پر ډاکټر ۰۰۰۰ ډیر ګران دی ۰ مګر ، هغه په ګران وطن کښې هغه وخت شپې تیروی ، چه دی پکښې د کابینې وزیر وي ۰۰۰
په هغه زړو ورسته پاته زمانه کښې زموږ یوازې یو وطنپال دغسې و ۰ اوس پدې ورسته وروسته زمانه کښې ماشاالله زموږ ډېر وزیران دغسې دي چه وطن پرې ګران

دی. مګر پدې ګران وطن کښې په هغه مهال جرا و سېږي چه دی پکښې د کابينې وزير وي.
دکابينې هغه محترم غړی د معارف وزير و. د پښتو ټولنې رياست رسما د معارف وزارت پورې مربوط و. د پښتو ټولنې رييس پوهاند صديق الله رښتين و. زه هم د همدې ټولنې علمي غړی وم. يوه ورز رئيس صاحب موږ ټولو غړو ته د استعلام په ذريعه خبر راکړ چه سبا په لسو بجو وزير صاحب پښتو ټولنې ته تشريف راوړي او تاسو سره ملاقات لري. نو تاسې به په همدغه مهال د رياست په دفتر کښې حاضر اوسئ!
حاضر شوو ، وزيرصاحب راغی... کښيناست. دعلم او معارف وطن او ملت ، پښتو او پښتنو په ارتباط يې ځو جذباتي خبرې وکړې ، دکار ټکی پکښې هيڅ نه و.مګر موږ يې ټول تر اغېز لاندې راغلو ، بيا يې وويل: دا پښتو ټولنه ده. موږ او تاسې رسما مکلف يو چه دلته دې ټولنې د مرام او مقرراتو سره سم ، پښتو ملي ژبې ته علمي خدمت وکړو نو لطفا تاسې هر يو خپل نظريات وواېئ....تقريبا موږ ټولو خبرې وکړې . بيکاره او دکار خبرې.
ډيرو به د پښتو او پښتنو په باره کښې احساسات ثرګندول ، ځينو به پدې برخه کښې د وزير صاحب د شخصيت په ستاينه کښې مبالغه کوله. يو نيم د پښتو ټولنې ځينې معمولي ضرورتونو ته د وزير صاحب توجه اړول. داسې کسان هم وو چه د افغا نستان د نورو ژبو د ويونکو د ځينو عناصرو او اشخاصو يا د ځينو بهرنيو هيوادونو له لاسه د پښتو د مخنيوئ په برخه کښې رښتيا او دروغ شکايتونه کول. ځينو به زور واهه چه د يو لړ قالبي الفاظو او علمي ترمونو اولغتونو په استعمال خپل علميت او لياقت ثابت کړي. د نورو ملګرو مشخصې خبرې رانه هېرې شوي دي.
خو زما د لنډو وړانديز لنډيز داسې کېدای شي :

په ځينو طبعي خصلتونو کښې ، فرد او ټولنه ، يو تر بله سره ورته والی لري. که يو فرد خپله روغتيا وساتي ، ورزش وکړي. سم او مناسب خوراک ولري او ځان قوي او

مضبوط کړي ، که له بهره څخه وجود ته يې مکروبونه هم ننوځي ، د هغه د وجود مقاومت په اثر د هغه مکروبونو اغېزه کمیږي یا له مینځه ځي نو که ټولنه ، خصوصا پښتو ټولنه او د هغه غړي سم کار وکړي ، د ښې مطالعې په اساس د منطق او استدلال او علمي اسنادو او شواهدو سره ښې لیکنې او تالیفات ټولنې ته وړاندې کړي ، بیا نو ټولنه پخپله ، موږ په کار قناعت کوي ، چاته د مخالفت څه موقع په لاس نه ورځي او که ورشي هم مخالفت یې دومره تاثیر نه کوي ۰۰۰۰

وزیر صاحب خپل ساعت ته وکتل ۰ ویل: دولس بجې شوې په کاروو کښې ستاسو بریالیتوب غواړم ۰ تاسې خپلو کښې سره کښېنئ ، د همدغو خبرو په اساس خپل کارونه تنظیم کړئ ۰ که ماته موڅه امر کاوه و رسمي وړاندیز راته وسپارئ ۰ زه ستاسو په خدمت کښې یم ۰۰۰۰ د خدای په امان ۰

د پښتو ټولنې رئیس موږ ته وویل: تاسې نور هم فکر وکړئ ۰ ددې خبرو په اساس ، او که تاسو سره نور نظریات هم وي ، سبا به سره کښېنو او ۰۰۰۰

مازیګر زه د استاد الفت د لیدو به تکل وخوزېدم ۰د هغه کور د ))چمچه مست (( د خوږ په غاړه ، په ښېر شاه مېنه) څلورمه کارته ( کښې و ۰ ور روان وم ۰ هلته د کارتې د کوڅو په دوړو کښې پیینځه

شپږ تنو ماشومانو په جګ اواز سندره ویله :

زما ښکلی جانانه

زه جار شمه له تانه ۰

ما مه شړه له ځانه ۰

قربان دې شم ۰

قربان دې شم ۰

السلام ۰

السلام ۰

ښاغلي رحیم ګل غمزده خپله دغه سندره په هماغه وختونو په کابل راډیو کښې ویلې

وه٠ په محافلو کښې يې هم اوروله او د ځينو نورو سندر غاړو له خوا هم ويل کېدله٠
او تر اوسه اورول کېږي٠
زه چه دغو خږ سرو سندر بولو ماشومانو ته نژدې شوم٠ ورته ودرېدم٠ بيا مې ورسره
لږه مرکه هم وکړه٠ وپوهېدم چه دا هلکان د همدې ښار اوسيدو نکي په ختېه هزاره ګان
ديي٠ او ژبه يې دري ده ٠٠٠٠سبا ته د پښتو ټولنې غونډه جوړه شوه ، نو ما دا کيسه
:وکړه او زياته مې کړه
دا خبره سمه نه ده چه موږ وو ايو فارسي ژبي د پښتو مخه نيسي٠
د کابل ښار فارسي ژبي هزاره ماشومان چه په خوند خوند ، په ډير شوق و ذوق ، پرته د
چا د وينا او
تقاضا نه ، پښتو سندره وايي او خوند تري اخلي ، د دوو حقيقتونو ثرګندونه کوي :
لمړئ دا چه په سندره کښې هنري زور دومره زيات دی چه يوازې د پښتنو نه ،
يوازد سندرغاړو نه ، يوازې د مشرانو نه ، بلکه د کوڅې ماشومو هزاره ګانو په زړونو
او ذهنونو يې هم دومره اغېزه کړی دی چه دغه سندره په ډېر شوق و ذوق او احساس د
هغو په ژبه جاری شوې ده ٠٠٠٠
دوهمه دا چه ))دا زه پښتون يم ته هزاره يې ((او ))دا زه فارسي وايم او ته پښتو ((خبره
د يو لږ نا بالغو٠ په نامه روښانفکرانو ، د غرض او مرض خبري دي٠ او نور پاته اولس
، لوی او واړه ، پښتون او هزاره او ٠٠٠٠ په يو صف کښې ولاړ دملي هنر)) ښکلي جانان
((ته دمينې سلام وړاندې کوي او تر ښکلا يې ځاريږي ٠٠٠٠
د تېرو هېرو خاطرو همدې خوږو خوندونو سره کور ته ورسيدم ، د افغاني صاحب د
شعرونو د مجموعې د خيالونو نور خيالولي شعرونه مې هم و لوستل٠دغسې))د يار
دمينې((نورې سندرې هم٠ يوازې دا نه ، دوطن او ملت ، د افغان او افغانستان
دمينې سندرې هم٠ او يوازې ، د محبت ، صداقت ، افغان ، دا افغانستان دی ، دا څه
حال دی ؟ تر عنوان لاندې منظومې نه ، بلکه دغسې نور غزل او نظمونه هم ، د ويناوال
ددغسې مينې څرګندوی دي٠

ما ډيرې خبرې وکړې٠ زه خپلې خبرې بسوم٠ تاسې لطفا ما وبخښئ او مجموعه ولولئ
٠

په درناوي
ستاسو خدمتګار
عبدالله بختانی
کابل - خیرخانه
د ۱۳۸۸ د زمري ۱۲ مه
د ۲۰۰۹ د اګست دربیمه



# سمیع الدین سعید افغاني

## د شاعرپه هکله

سمیع الدین افغاني د اروابناد مولوی محمد سعید) سعید افغاني (ځوی د مرحوم مولوی عبدالمجید لمسی په کال۱۳۳۳ه ش کی دلغمان ولایت د عمرزیو د قریی دخیراباد په کلی کی زیږیدلی دی٠ لمړنی زدکړې یی د لغمان ولایت د حیدر خانیو په د هاتی ښونځی ، دمهترالمک ابتدایه ښونځی او د روښان په لیسه کی سر ته رسولی او په کال۱۳۵۹ کی د لوړو او مسلکی زده کړو د لاسته راوستلو په مقصد بهر ته واستول شو٠ اوپه کال۱۳۶۴ کی د کورنیو چارو په وزارت کی د ډګروالی تر رتبی رسیدلی دی٠

سمیع الدین افغانی شاعردی چه یوه شعری مجموعه یی ) د وطن یادونه ( تر سر لیک د چاپه راوتلی ، ډیره برخه لیکنی او شعرونه یی د وطن په مجلو او جرایدوکی خپاره شوی دی او همدارنګه ډیر شعرونه یی دوطن دوتلو شاعرانو او لیکوالانو په علمی سیمینارونو او مشاعروکی دکلمه شوی اویو تعداد نوریی دوطن د خوږ ژبو سندرغاړو په خوږو اوازونو کی کمپوز شویدی لکه بنجاره ماما ، پل دی بختو رشه ، همت ، افغان یم ، دا افغانستان دی ، یاره ستا په اننګوکی او ډیر نور چه زموږ دهیواد والو د توجه وړ ګرځیدلی دی ۰

سمیع الدین افغانی متاهل او د پنځو اولادو څښتن دی ۰

لیکل شوی اثار

د وطن یادونه - شعری مجموعه، د خاپوړو کلی - دکلو او بانډو کیسیپس از بازګشت - داستان کوتا ، پردیس خیالونه -شعری مجموعه

) دحق دلاری فرهنګی ټولنه ۰ جرمنی (